



# دبدعاتونه کرکه وکه


مؤلف: سماحة الشيخ

عبدالعزيز بن عبدالله بن باز

زبارن: قاضي محمد شعيب (صافي)






Kingdom of Saudi Arabia

**The Cooperative Office For Call And Guidance To Communities at Um Al-Hammam**

**Under the Supervision of the ministry of Islamic Affairs Endowment Guidance & Propagation**

Tel. 4826466 / 4884496 Fax 4827489 - P.O. Box 31021 Riyadh 11497

فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ -

(قرآن كريم)

# التحذير من البدع

# دبدعاتو نه کرکه وکه

مؤلف : سماحة الشيخ عبدالعزيز بن عبدالله بن باز

ژباړن : قاضی محمدشعیب (صافی )

دکتاب نوم : دبدعاتونه کرکه وکه

دبحث موضوع : دمیلاد النبی(ص)، معراج دشپی او د شعبان دپنځلسمی شپی دمجلسونو جوړولو شرعی حیثیت

مؤلف : سماحة الشیخ عبدالعزیز بن عبدالله بن باز

ژباړن : قاضی محمدشعیب (صافی)

ناشر : مکتبة الامام محمد بن اسماعیل البخاری

د چاپ نیته : ١٤١٤هـ ق

د لومړی چاپ شمیر : ١٠٠٠ توکه

د دوه یم چاپ شمیر : ١٠٠٠ توکه

# د دوه یم چاپ مقدمه

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم و بعد :

دا خبره هر چا ته په ډاګه ده چی د دعوت إلی الله مسئله لکه څنګه چی منحصره د کوم هیواد ، سمت، نژاد ، قوم، ډلی او فرد پوری نه ده دغه راز په خپله دعوت إلی الحق هم د کومو خاصو وسائلو او طریقو پوری اختصاص نه لری بلکښی متعددی لاری چاری وجود لری چی د امر بالمعروف او نهی عن المنکر او یا په بل عبارت د اسلامی دعوت د عمومیت او پراختیا میندلو په برخه کښی کمك او مرسته کوی .

د دی جملی نه د لیکوالانو سره د کتابونو د چاپ په قسمت کښی تعاون او د کتابونو ، رسائلو او نورو نشراتی موادو مجانا او وړیا توزیع کول. او دغه ډول د عامو مسلمانانو د مطالعی او اګاهی په خاطر د کتابخانو جوړول او د مطالعی او لیکنی لپاره زمینه برابرول د یادونی اوړام وړ ټکی دی .

د مشهور محدث محمد بن اسماعیل بخاری (رح) په نوم

کتابخانه یا کتاب تون چی اوس الحمد لله دعامو مراجعینو پر مخ خلاصه او پرانستی ده د دعوت په دغه ساحه کښې یو مثبت او اغیزمن ګام اخستل بلل کیدای شی .

د دغه رسالی د دوه یم ځل لپاره چاپ او په لږ وخت کښې د لومړی ځل یو زر چاپ شویو ټوکونو تمامیدل او ورسره د علاقه مندانو لخوا شوق او علاقه درلودل په حقیقت کښې له یو پلوه ددی خبری د ژوت والی او ثبوت نښانه ده چې خلك اوس په غوڅ اکثریت سره په ګردو چارو کښې د عمل کولو لپاره د مسنونه طریقو د لټولو او پیژندلو په باره کښې زیاته مینه او دلچسپی لری او دهری هغه وسیلی په لاس ته راوړلو کښې چی د هغی په ذریعه سره د اسلام واقعی روح او حقیقت درك کیږی یو د بل نه سبقت او وړانه والی کوی، او د بل پلوه د حق پرستو علماؤ په ضد د مبتدعینو ملایانو او د هغوی د پلویانو د ناوړه تبلیغاتو د بی اثره پاتی کیدو په باب یو ستر دلیل دی .

د کتاب د دوه یم ځل چاپ په وخت مونږ ته دا فرصت په لاس راغی چی د پښتو هغه شمیرتوری کوم چی په لومړی چاپ کښې د قلمی اصلاح نسخه پاتی شوی وه اصلاح او درست

شـول، او همـدارنګه ځنی اياتونه چی حـرکـات وربـاندی نه ؤ
ليکل شوی او د عـامو وګړو لپاره وربـاندی تلفظ کـول سخت او
مـشکل ؤ په هغـو بـاندی حرکـات وليـکل شـول او اوس د هر چا
لپاره په اسانه سره د استفادی وړ وګرځيدل.

الله پـاك دې مونږ ته په شريعت بـاندی د عـمل کـولو توفـيق
راکړی او زمونږ ټول نيك اعمـال دی زمونږ لپاره د نجات ذريعه
او وسيله وګرځوی .

وصلی الله تعالی علی خير خلقه محمد وآله واصحابه
اجمعين.

محمد شعيب "صافی" - کنـړ - افغانستان

بسم الله الرحمن الرحیم

## سریزه

ځنی خلك په دی عقیده دی چی دین دهر سړی دخپل فکر او خوښی شی دی او هر چاچی کومه طریقه دعبادت لپاره غوره کړه او په هغی سره یی عمل تر سره که، دده دنجات او سعادت وسیله ګرځی؛ اما حقیقت دا دی چی ددنیا او آخرت کامیابی یواځی درسول الله صلی الله علیه وسلم په مبارکو سنتو او طریقو کښی ده او له دینه پرته نوری ټولی لاری چاری په هر نوم او دستور سره چی او نومولی شی تلل ورباندی انسان دتاوان، هلاکت، او تباهی کندی ته غورځوی، ځکه الله پاك ددغه امت دهدایت اولارښونی لپاره رسول الله صلی الله علیه وسلم رالیږلی دی او د دین په ټولو امورو کښی یی پر اسلامی امت باندی دهغه پیروی او متابعت فرض او لازمی ګرځولی دی، او درسول الله صلی الله علیه وسلم پریکړوته غاړه ایښودل او په طریقو او سنتو باندی یی ورله تلل او خوښی ښرګندول دایمان لپاره اساس او بنست ټاکلی دی، الهی فرمان په دی برخه کښی داسی هدایت ورکړی دی.

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ

لَايَجِدُوْا فِيْ اَنْفُسِهِمْ حَرَجاً مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْماً ط

او دغه راز الله(ج) د رسول الله صلی الله علیه وسلم داوامرو او احکامو څخه مخالفت دهلاکت او عذاب باعث خودلی دی او دغه لوی خطرته یی مسلمانان په خپل مبارك قول سره داسی متوجه کړی دی: فَلْيَحْذَرِ الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖ اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ.

که دخدای تعالی د رضا او خوشحالی په لټولو کښی په انصاف سره دقران کریم نصوصو او درسول الله صلی الله علیه وسلم مبارکو احادیثو ته نظرواچول شی حتما سړی دی نتیجی ته رسیری چی ددنیا اوآخرت کامیابی او دالله تعالی رضا او خوشحالی صرف درسول کریم صلی الله علیه وسلم په تابعداری سره ترلاسه کیدای شی، ځکه چی قرآن کریم فرمایی: قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروی دانه ده چی سړی فقط یو څو اوامر عملی کړی او دیو څو مناهیوو څخه ځان وساتی، بلکښی درسول کریم صلی الله علیه وسلم پیروی عبارت له دینه ده چی مسلمان په بشپړه توګه خپل ټول کړه وړه دنیوی وی او که اخروی وی، د راحت په حالت کښی وی او که دتکلیف په وخت کښی وی

دخوشحالی په صورت کښی وی او که دغم په مهال کښی وی،
په عباداتو کښی وی او که په معاملاتو کښی وی لنده داچی په
هرڅه کښی او هر وخت کښی یی د رسول الله صلی الله علیه
وسلم په طریقو باندی درست عیار او عملی کړی او په هیڅ شی
کښی د پیغمبر علیه السلام داحکامو او سنتو مخالفت ته زړه
ښه نه کړی.

د اسلام دسپیڅلی دین لوی خصوصیت او امتیاز دا دی
چی په دغه دین کښی صرف دالله جل جلاله قول او درسول اکرم
صلی الله علیه وسلم ارشادات، هدایات او سنت د دلائلو په
برخه کښی مدار داعتبار دی او دبل هرچا قول او فعل ولوکه دا
ډیرغټ شخص ته منسوب هم وی، خوکله چی دالله او دالله
درسول داحکامو مخالف وی داعتبار وړنه دی همدا وجه ده چی
علماء وایی: هرڅوک چی درسول الله صلی الله علیه وسلم
دحکم خلاف کوم عمل وکړی اویا کومه طریقه ایجاد کړی اګر
چی ددین په نیت سره وی خوبیاهم کونکی یی ګناه ګار او عمل
یی کوته او مردود دی لکه چی پیغمبر علیه السلام فرمائی:

(مَنْ اَحْدَثَ فِی اَمْرِنَا هذاَ مَالَیْسَ مِنْهُ فَهُوَرَدٌّ) .

په دین کښی بدعت ددغه ډول اعمالو دجملی څخه شمیرل

کیږی او دا داسی عمل دی چی فاعل او کونکی یی ددین په صبغه او جامه کښی په دی عقیده باندی تر سره کوی چی گواکی دا ددین جزء او نیك کار دی، حال داچی دا ددین جزنه بلکښتی په اسلام کښی نوی راپیدا شوی عمل یی چی په شرع شریف کښی دهغی لپاره کوم اساس او بنیاد نه شی پیدا کولی، نه په قرآن مجید کښی دهغی په باب کوم اصل مندلی شی او نه ورله په احادیثو کښی دمشروعیت دلیل ښودلی شی، اونه په خیرالقرون کښی ددغه عمل دانجامولو په برخه کښی دچاقول او فعل دسند په توگه وړاندی کولی شی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو مبارك حدیث کښی هرنوی پیدا شوی عمل په دین کښی بدعت بللی دی او هر بدعت ته یی گمراهی ویلی ده او دهری گمراهی انجام یی جهنم ښودلی دی، (کل محدثة بدعة وکل بدعة ضلالة وکل ضلالة فی النار) الحدیث.

شیخ عبدالعزیز عبدالله بن باز دسعودی عربستان دافتاء دعوت او ارشاد رئیس په اوسنی عصر کښی واقعا یو داسی شخصیت دی چی داسلامی امت دعقائد و او اعمالو د اصلاح په برخه کښی د دعوت او تبلیغ وظیفی ته په خاص اهمیت

قائل دی او په دغه ساحه کښې داسبابو او وسائلو په عمومیت او پراختیا کښې په اخلاص او صداقت سره هڅه او کوښښ کوی، ترڅو مسلمانان دشرك، بدعت او رسوماتو په ناوړه عواقبو باندی خبر شی چی بیا دقرآن کریم او احادیثو په رڼا کښې دشرکی عقیدی، او مزخرفو خودساخته اعمالو څخه ځانونه وساتی.

دشیخ ابن باز یوه رساله د (التحذیر من البدع) په نوم چاپ شوی ده، په دغه رساله کښې نوموری دمیلاد النبی صلی اللّه علیه وسلم په نوم مروجه محفلونه او مجالس جوړول او اهتمام دغه راز د رجب دمیاشتی په آخره کښې دمعراج دشپی په نوم دیوی شپی لمانځل، او همدارنگه دبرات یعنی دشعبان دپنځلسمی شپی خاص ډول اهتمام او درناوی او دغه شپه دیوځانگړی قسم عبادت لپاره اختصاصول ناروا او بدعت گڼلی دی او دقرآن کریم او نبوی سننو په استنادیی ددغو محدثو عملونو بطلان او عدم مشروعیت په ډیره معقوله او مدلله توگه سره ثابت کړی دی.

دغه بدعت (دمیلات مروجه محفل) د (۷) اوومی پیړی په لومړۍ لسیزه کښې لکه چی ابن خلکان لیکلی دی په (٦٠٤)هقا

کال کښې د مظفرالدین کوکرې بن اربل په نوم دیو مسرف پاچا لخوا چې د دین څخه ناخبره ؤ او یو دنیا پرست ناکاره عالم یې ملګرتیا کوله، دموصل په ښار کښې کیښنودل شو، او کوم عالم چې ددغه بدعت دایجاد په برخه کښې یې پاچاته دجواز مشوره ورکړې وه دهغه په باب ذهبي په دول الاسلام کښې لیکلي دي چې دهغه نوم عمر بن وحید ابوالخطاب متوفی ۶۳۳ھ ق ؤ.

حافظ ابن حجرعسقلاني دلسان المیزان په ٤ ټوک ۲۹۶ مخ کښې ددغه مزخرف عالم په باره کښې داسې لیکلي دي:

ده به ددین دائمه وو او اسلافوپه شان کښې ډیره زیاته بې ادبي او ګستاخي کوله، دګنده او قبیحي ژبې څښتن ؤ، نهایت زیات احمق او مغرور ؤو، او ددین په امور کښې ډیر بې پروا او سست ؤ،علماؤ ویلي دي چې دپاچا مطلب ددغه بدعت په رواجولو کښې ځان ته دعوامو پام را اړول او دخپلې واکمنۍ استحکام ؤ، او همدغه وجه وه چې کال په کال به یې ددغه محفل دمراسمو په تر سره کولو باندې دلکونو ریو مصارف کوله.

علامه ذهبي د دول الاسلام په ۲ ټوک ۱۰۳ مخ کښې په

دی هکله داسی لیکلی دی (وکان ینفق کل سنة علی مولد النبی صلی اللّٰه علیه وسلم نحو ثلاث مائة الف) یعنی هرکال به یی د رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم دمیلاد دلمانځنی په مناسبت جوړ شوی محفل باندی تقریبا دری لکه روپی مصرف کولو. اما روسته بیا په نورو سیمو کسی هم دبدعت پسنده اشخاصو له خوا دغه محدث عمل ته هوا ورکړل شوه او عمومیت یی ومنده، ولی دهند په نیمه وچه کښی چی سړی په دی وروستیو پیړیو کښی دهندوستان او ورسره په ګاونډکښی دپرتو هیوادونو پخوانی او وسنی تاریخ ددین په لحاظ سره مطالعه کوی نو وینی چی ددغه بدعت او په عامه سطحه دنورو بدعاتو په رواجولو کښی خودغرضه حاکمانو او علماء سوء په ګډه سره رول لوبولی دی او لا کله چی واکمنی طبقی دغه ناکاره علماء دخپلو ګټو دساتلو په خاطر په څنګ کښی نیولی دی نو دغه مزخرفه او ماده پرست علماء بیا دهغوی دنفوذ نه په استفادی کولو سره دبدعاتو او رسوماتو په ترویج اوعمومیت کښی ځانونه بنه ستړی ستومانه کړی دی او بالخصوص شیعه وو او بریلیانو ترټولونه زیاتی په دغه ناولی دنده کښی غوټی وهلی دی.

ما دغه رساله «التحذیر من البدع» له دی امله په پښتو

ژبه ترجمه کړه چی ددغه لسان ویونکی او لوستونکی له یوخوا د دلائلو په رڼا کښی په دی پوه شی چی داسلام په مکمل کړی شوی دین کښی دغه اعمال چی دبحث موضوع ده او په دی زمانه کښی یی دبل هروخت په نسبت بازار زیات تود دی، کوم شرعی حیثیت نه لری بلکښی د شریعت خلاف نامشروع او محدث عملونه دی او ځان ساتنه ترینه ضروری او لازمی خبره ده، او دبل پلوه دبدعاتو ناوړه اثراتو او عواقبوته هم پام لرونکی اووسی ځکه اکثر خلك دبدعاتو په مهلك جال کی گیردی او په دی گمان چی گنی دآخرت لپاره دثواب ذریعه او نیك کار دی تر آخره پوری پکښی اخته وی او بالآخره عمر یی پای ته ورسیږی اوهمدغسی بی توبی مړشی.(وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ صُنْعًا) .

الله پاك دی مونږ ته په سمه لاره دتللو توفیق راکړی، دبدعاتو، خرافاتو، او هرډول باطل او ناروا ؤ ځخه مو دی په آمان کښی وساتی، وماذلك علی الله بعزیز صلی الله تعلی علی خیر خلقه محمد واله واصحابه اجمعین

قاضی محمد شعیب «صافی»

بسم الله الرحمن الرحيم

# لومړی رساله

الحمدلله والصلوة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن اهتدى بهداه اما بعد:

د رسول الله صلى الله عليه وسلم دنيك مرغه ميلاد (زيږيدنې) دلمانځنې په مناسبت دخصوصي غونډو جوړولو او په دغو غونډو کښې دپيغمبر عليه السلام داحترام لپاره په دې عقيده چې دې محفل ته تشريف راوړي، پاڅيدل او قيام او په يوه ځانګړې توګه دسلام ادا کول، او دغه راز پکښې دځنو نورو مراسمو داجرا کولو په هکله دډيرو کسانو لخوا څوځوواره داپوښتنه وشوه چې دغه عمل دشريعت له مخې څه حکم لري؟

ځواب: د رسول الله صلى الله عليه وسلم دزيږيدنې او يا دبل چا دزيږيدنې د لمانځنې په مناسبت غونډه (دمولود په نوم محفل) جوړول شرعا بالکل جواز نه لري ځکه چې دا عمل[1]

---

۱- دبحث موضوع هغه مروجه مجالس او محفلونه دي چې د ربيع الاول دمياشتې په ۱۲ نيټه او يا ددغه ورځې پمناسبت سره په نورو وختو کښې دخاصو مراسمو شرطونو مصارفو او قيوداتو په ترڅ کښې منعقد کيږي. مترجم

بدعت او په دین کښې نوی طریقه ده، او داله دی امله چې دعه عمل نه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله کړی دی او نه په خیرالقرون (غوره پیړیو)کښې ـــ

درسول الله صلی الله علیه وسلم راشده خلیفه ګانو او نورو صحاب وو او تابعینو رضوان الله علیهم اجمعین ددغه عمل داهتمام په برخه کښې اقدام کړی دی، او حال دا چې دوی درسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقو او سنتو باندی ترټولو خلکو ښه پوهیدل او له هرچانه دوی دنبی علیه الصلوة والسلام سره زیاته مینه او محبت درلوده او په ټول امت کښې دوی درسول الله صلی الله علیه وسلم دشرع او قانون زیات تابعدار او پیرو وو، درسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دی فرمائي: (مَنْ أَحدَثَ فی أَمرِنَا هذَا مَالَیسَ مِنهُ فَهُوَرَدٌّ)[۱] او په بل حدیث کښې نبی علیه السلام فرمایلی دی: (عَلَیکُمْ بِسُنَّتِیْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِیْنَ الْمَهْدِیِّیْنَ مِنْ بَعْدِیْ تَمَسَّکُوْابِهَا وَعَضُّوْا عَلَیْهَا بِالنَّوَاجِذِ وَاِیَّاکُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْاُمُوْرِ فَاِنَّ

---

۱- ژباړه: د اسلام په دین کښې چې چا داسې نوی کار اضافه کړو چې ددین ځخه نه وی هغه عمل مردود دی دمنلو وړنه دی.

كُلُّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَة)[١]

په دغو دواړو مبارکو احادیثو کښې دبدعاتو ارتکاب په کلکه سره منع شوی دی او دمبتدعینو دپاره سخته ویره او تحذیر بیان شوی دی. الله جل جلاله په خپل مبین کتاب کښې په دی هکله فرمائی: (وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا)[٢]

او همدارنکه الله تعالی فرمائی: فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ[٣] .

او بل ځائی فرمایلی دی: (لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ

---

١- پرتاسی باندی ځما دسنتو او طریقو عملی کول او پابندی لازم ده او له مانه وروسته ځما دهدایت مندوونکو خلفاء دطریقو کلك پابند شی، منکولی وریاندی ولګوی اوعمل پری وکړی او په دین کښی دنوو راپیدا شویو اعمالو ځخه ځان وژغوری ځکه په دین کښی دهرنوی عمل انجامول بدعت دی او هر بدعت (بدعت کونکی) ګمراه دی.

٢- سورة حشر :(٧) او هغه ځه چی درکړی تاسوته رسول (دالله) نووائی خلی وینسی قبول ئی کړی، او هغه ځه چی منع کوی (رسول الله) تاسی له هغه ځخه، نو بیرته شی تری (مه ئی غواړی).

٣- سورة النور : (٦٣) پس ودی یریږی هغه کسان چی مخالفت کوی له امره (حکمه) ددغه رسول ځما، له دینه چی ورسیږی دوی ته ځه فتنه (آفت په دنیا کښی) یا ورسیږی دویته عذاب دردناك (په آخرت کښی).

أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا[١].
همدا دول الله پاك مهرباني كوی او فرمائی: وَالسَّابِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ تَحْتَهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا اَبَدًا ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ[٢].

او همدغه راز الله تعالى فرمايلي دي:
(اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ

---

١- سورة احزاب : (٢١) خامخا په تحقيق دی تاسی ته (ای ويريدونكيو) په (كارد) رسول الله صلى الله عليه وسلم كښی اقتداء غوره، نيكه ښه پاره دهغه چاچی ډاريږی دالله تعالى اواميد لری (دملاقات) او ورځی روستنی (قيامت) او ډير يادوی الله تعالى هم په خوله هم په زړه.

٢- سورة التوبة : (١٠٠) او هغه وړاندينی اولنی ايمان لرونكی له مهاجرينو او انصارونه او نور هغه كسان چی ددغه سابقانو متابعت يی كړی دی ددوی په احسان يعنی نيكی سره راضی شوی دی الله تعالى له دوی څخه (دطاعت په قبول سره) او راضی شوی دی دوی له الله تعالى نه (دنعمت په وركړه) او الله تعالى دوی ته جنتونه تيار كړی دی چی ددغه جنتونو يعنی دونو او مانيو دلاندی به يی ويالی بهيږی او دوی به په هغو كښی دتل او هميش لپاره اوسيږی دغه (رضاء او جنت) ډير لوی بری دی.

لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيناً[۱]

په قرآن کريم کښې دغه ډول آيتونه ددې موضوع په ارتباط زښت زيات دي، نو اوس چې دغه ځيل مولود د ثواب په نيت لمانځل کيږي نو دينه خو داسې ثرګنديږي چې (العياذ بالله) الله پاك ددې امت لپاره دين نه ؤ مکمل کړی او رسول الله صلی الله عليه وسلم هم دغه دين ثرنګه چې لازم او مناسب ؤ خپل امت ته نه ؤرسولی چې په عمل کښې يې راوستی وای، ترځو روستنی خلك را پيدا شول او په اسلام کښې يې داسې نوی کارونه يعنی بدعات او خرافات چې شريعت دهغې اجازه نه وه ورکړی راپيدا کړل او دا په دې ګمان چې دا نيك کارونه دي، دين ورباندې کمال ته رسيږي او الله جل جلاله ته دتقرب وسيله ګرځي، حال داچې دابې له شکه ډير لوی خطرناك خيال دی، او په الله پاك او رسول الله صلی الله عليه وسلم باندې اعتراض او نيوکه ده کوم چې الله جل جلاله او دهغه رسول محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم ترينه منزه

---

۱- سورت مائده : (۳) نن ورځ مکمل کړو ما تاسې ته دين ستاسې يعنی اصولا او فروعا، او تمام يعنی پوره می کړو خپل نعمت پرتاسې (ای مؤمنانو!) يعنی ددين په اکمال سره او غوره کړو ماتاسې ته اسلام ددين په لحاظ سره، يعنی په ټولو اديانو کښې ډير پاکيزه.

او مبراء دی، ځکه الله پاك دخپلو بندګانو لپاره دین پوره کړی دی او نعمت یی وریاندی تمام کړی دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم هم په بشپړه توګه سره دین بیان کړی دی او جنت ته دننوتو او دجهنم داور ځخه دبچ پاتی کیدوټول طرق اولاری یی خپل امت ته په واضحه توګه ښوولی او په ګوته کړی دی، ځکه په صحیح حدیث کښی چی عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما یی روایت کړی دی داسی راغلی دی: عن عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما قال رسول الله صلی الله علیه وسلم مابعث الله من نبی الا کان حقا علیه ان یدل امته علی خیر ما یعلمه لهم وینذرهم شرما یعلمه لهم، رواه مسلم فی صحیحه[1]

او دا ښکاره خبره ده چی زمونږ پیغمبر جناب محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د ټولو انبیاءُ غوره او آخرنی پیغمبر دی او د تبلیغ او نصیحت په لحاظ د ټولو ځخه اوچت او اکمل

---

١- دعبدالله بن عمرو رضی الله عنهما ځخه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: الله پاك په هر نبی باندی دا لازمه کړی ده چی خپل امت ته د نیکو او غوره کارونو تعلیم ورکړی فائدی او ګټی یی ورته وښائی او دبدو(ناوړو) کارونو نه ورته دځان ساتنی په هکله توصیه وکړی او ویی ویره وی، دغه حدیث مسلم شریف پخپل صحیح کښی روایت کړی دی.

دی نو که چیری دمولود د لمانځنی په مناسبت مجلسونه جوړول
د الله تعالی د غوره شوی دین یوه برخه وای، حتماً به دا عمل
یا رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل ژوند کښی په خپله
انجام کړی وای او یابه دده صلی الله علیه وسلم صحابه ؤ رضی
الله عنهم ددغه فعل کولو ته اقدام کړی وای خوکله چي په خیر
القرون کښی یعنی په غوره شویو پیړیو کښی هم دغه عمل د
چا لخوا ترسره شوی نه دی نو ثابته شوه چی دا داسلام د
احکامو څخه نه بلکښی دا دهغو بدعاتو له جملی څخه دی چی
په اسلام کښی نوی را پیدا شوی دی او نبی علیه السلام خپل
امت ددغو ناجائزو کارونو د ارتکاب څخه ویرولی دی لکه چی
په تیرو دوه مبارکو احادیثو کښی یی یادونه وشوه، او دغو دوه
حدیثونو ته د معنی په لحاظ ورته نور ډیر احایث هم شته چی
دغه مدعی ثابته وی لکه دا قول درسول کریم صلی الله علیه
وسلم شو چی دجمعی د ورځی په خطبه کښی یی وفرمایل:

اما بعد: فإن خیر الحدیث کتاب الله وخیر الهدی هدی
محمدصلی الله علیه وسلم وشر الامور محدثاتها وکل بدعة
ضلالة- رواه الامام مسلم فی صحیحه[1]

---

(۱) اما بعد: بیشکه د الله تعالی کتاب تر ټولو غوره کلام او بیان دی
چی بهترینه طریقه دهمدی کتاب په ذریعه سره منډل کیزی اودمحمد رسول الله->

په دی برخه کښی زښت زيات آياتونه او احاديث وارد شوی دی، او ددغه امت ډير زيات شمير علماؤ هم ددغه ډول محفلونو د انعقاد او جوړولو څخه انکار کړي دی او د ذکر شويو آياتونو او احاديثو او څنو نورو شرعی دلائلو په اساس يی هغه ناروا ګڼلی دی او دهغی نه يی د منع کيدو او ځان ساتنی په باب يادونه کړی ده، البته بعضو متأخرينو ورته جواز ورکړی دی، خو هغه هم په دی شرط چی دغه غير مشروع شيان پکښی ونه کړای شی مثلاً درسول الله صلی الله عليه وسلم په ستاينه کښی غلو او تجاوز ونه کړای شی، د ښځو او نارينۀ تر مينځ اختلاط نه وی، د موسيقی او لهو ولعب نور وسائل پکښی استعمال نه شی، او همدارنګه څنی نور داسی اعمال پکښی ترسره نه شی چی د اسلام سپيڅلی قانون ناروا ګڼلی وی او دوی يی په دی ګمان کوی چی دا بدعت حسنه دی او جواز لری ځکه شرعی قانون دادی چی کله په کوم شی کښی په دينی لحاظ سره نزاع واقع شی نو دالله تعالی کتاب او د محمدصلی الله عليه وسلم سنتو او ارشاداتو ته يی وړاندی کوو

---

-> صلی الله عليه وسلم سنت دخير او هدايت سرچشمه ده، او ترټولو ناوړه هغه کارونه دی چی په دين کښی نوی د ځانه أضافه او ددين جز وګرځول شی او هر نوی کار(بدعت) ګمراهی او ضلالت دی.

او دقرآن کریم او احادیثو په رڼا کښې یې فیصله او پریکړه لټوو چي دالله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې برخه کښې څه فرمان دی لکه چې الله پاك فرمائی:

يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اَطِيْعُوْا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوْا الرَّسُوْلَ وَ أُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ إِلَى اللّٰهِ وَ الرَّسُوْلِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الآخِرِ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَاَحْسَنُ تَأْوِيْلاً. (۱)

دا رنګه الله پاك په بل ځای کښې فرمایلی دی: وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللّٰهِ (۲) ۰

مونږ دغه مسئله چې د مولود په مناسبت د محفلونو ځانګړی اهتمام دی د الله پاك کتاب ته واړندی کړه، الله جل جلاله په خپل کتاب کښې مونږ ته په فعل او ترك کښي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په اطاعت او پیروی سره امر

---

(۱) نساء (۵۹): ای مؤمنانو! تاسی د الله حکم ومنی او دالله د رسول حکم ومنی او اطاعت وکړی د خاوندانو د حکم چې ستاسی څخه وي یعنی د مسلمانانو حاکمانو او مشرانو او که بیا مو په کوم شی کښې نزاع پیښه شوه نو الله طرفته یعنی دالله کتاب ته او رسول ته یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم احادیثو ته یې راجع کړی که په الله او ورځ د آخرت باندی ایمان لری، او دا رجوع الله او رسول ته ډیره غوره ده او دا رجوع د عاقبت له جهته ډیره ښه ده.

(۲) شوری- ۱۰: او په هغه خبره کښې چې د کوم څیز په باب جګړه کوی تاسی پس د هغې حکم یعنی فیصله الله ته مفوضه ده.

کړی دی او ددی خبری آگاهی پکښی هم راکړی ده چي د اسلام سپیځلی دین په تمامه معنی سره کامل (او مکمل دی)او ددی خبری د ثبوت کوم دلیل چی رسول الله صلی الله علیه وسلم ددغه محفل اهتمام په خپله کړی دی وجود نلری، نو معلومه شوه چی دا په هغه دین کښی نشته کوم چی الله پاك مونږ لپاره بشپړه کړی دی او درسول کریم صلی الله علیه وسلم په اتباع سره یی راته پکښی حکم فرمایلی دی، او دا ځکه چي مونږ دغه مسئله د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنتو ته هم راجع کړه او په هغی کښی مو ولیدل چی دا فعل نه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله کړی دی اونه یی بل چاته د هغی امر کړی دی او نه دده قدرمنو صحابؤ ددغه عمل په ترسره کولو کښی اقدام کړی دی، پس ددی ټولونه دا نتیجه په لاس راځی چی دا شرعی عمل نه دی بلکښی د هغو بدعاتو له جملی څخه دی چی نوی را پیدا شوی دی او دین ګنل کیږی.

ددغه تحقیق په رڼا کښی چی هرڅوك لږ غوندی بصیرت و لری، حق یی خوښ وی او دحق په پلټنه کښی دانصاف نه کار اخلی په دی پوهیږی چی دمولود په مناسبت ددغه ډول مجلسونو ترتیب ددین دامورو څخه نه دی بلکښی هغه ناروا

عمل دی چی الله پاك او دهغه رسول صلی الله علیه وسلم یی په ترك او ورنه په اجتناب کولو سره مونږ ته امر کړی دی، او داچی په مختلفو سیمو کښی ډیر خلك دمیلاد په مناسبت غوندی او مجلسونه جوړوی نوعقل مند انسان باید په دی ونه غولیږی ځکه حق داشخاصو په کثرت سره نه پیژندل کیږی بلکښی حق یواځی دشرعی دلائلو په اساس پیژندل کیږی اوبس لکه چی الله پاك دیهودو او نصارا ؤو متعلق فرمائي: (وَقَالُوا لَن يُدخُلَ الجَنَّةَ الا من كَانَ هُوداً أو نَصَارى تِلكَ أمَانِيُّهُم قُل هَاتُوا بُرهَانَكُم اِن كُنتُم صَادِقِينَ) [۱].

او په بل ځای کښی الله پاك فرمایلی دی: (وَاِنْ تُطِعْ اَكثَرَمَن فِى الأرضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللهِ) [۲].

اوبیا زیاتره دمولود په مناسبت دغه مجالس برسیره پردی چی بدعت دی نور یو زیات شمیر منکرات او ناروا اعمال

---

۱- بقره : (۱۱۱) وائي اهل کتاب له سره نه ننوځی جنت ته مگر هغه څوك به ننوځی چی یهودی یا نصرانی وی، دا ددوی نفسانی غوښتنی دی دوی ته ووایه راوړی خپل دلیل پردی خبره که په دی وینا کښی رښتنی یی.

۲- انعام : (۱۱٦) او که متابعت وکړی ته دزیاتو هغه کسانو چی پا ځمکه کښی دی نو وابه دی ړوی دوی ای محمده ! دالله دلاری څخه.

پکښې ترسره کیږي مثلاً د نارینه وو سره دښځو اختلاط، ساز او سرود (آوازونه او غزلې ویل) دموسیقۍ دآلاتو غږول، دنشه یي او مخدره شیانو استعمال او ځپېل او دځنو نورو ناوړه اوغیر مشروع کارونو انجامول شول، او کله کله پکښې ددینه هم لوی جرم واقع کیږي چې هغه شرك اکبر دی، دمثال په ډول درسول الله صلی الله علیه وسلم په ستاینه او تعریف کښې غلو او بې ځایه مبالغه کوي، د اولیاء الله په مدحه کښې دحدنه تجاوز کوي، آواز او فریاد ورته کوي مرسته ورنه غواړي او داعقیده ساتي چې اولیاء عالم الغیب دي، او دغه راز بعضې نور ناروا کارونه شو.

او حال داچې په سیې روایت کښې راغلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: (ایاکم والغلوفی الدین فانما اهلك من کان قبلکم الغلو في الدین).

په دین کښې دغلو او بې ځایه مبالغې څخه ځانونه وساتئ ځکه ستاسې څخه مخکښې خلك په دین کښې دغلو او افراط په وجه هلاك شوي دي.

او په یو بل حدیث کښې چې امام بخاری(رح) روایت کړی دی نبي علیه السلام فرمایلي دي: (لا تطروني کما اطرت

النصاری ابن مریم انما انا عبد فقولوا عبدالله ورسوله) خرجه البخاری فی صحیحه من حدیث عمر رضی الله عنه.

(ځما دتعریف او توصیف په وخت کښې دحد څخه تجاوز مه کوی لکه څنګه چې نصرانیانو دعیسی بن مریم په باره کښې اوکړه او هغه ته یې د الله تعالی دځوی نسبت وکړ ، زه صرف بنده یم نو په دی اساس ځما په هکله او وایې: عبدالله ورسوله)

یعنی ځمادتوصیف په برخه کښې دومره افراط مه کوی لکه څومره چې نصاریٰ ؤ دعیسی بن مریم په برخه کښې کړی ؤ بې شکه زه بنده یم ماته دالله بنده او دهغه رسول او وایئ.

او بیا دحیران تیاوړ خبره خولا داده چې زیاتره خلك په دغه ډول کنفرانسونو کښې برخه اخستلو ته په زیات اهمیت قائل وی او دالله تعالی دحقوقو او فرائضو په اداء کولو کښې سست او مقصر وی حتی چې په جمع سره لمانځه ته هم حاضریدای نشی او په دی نه پوهیږی چې دڅومره ستری ګناه مرتکب وګرځیدل ولی دیته یې خیال قدری هم نه وی. بیشکه چې دا دایمان کمزوری او دالله تعالی دورکړی بصیرت کم والی دی، او په زړونو باندی د ډول ډول معصیتونو او ګناهونو

دزنګ تاثیر اواغیزه ده الله پاك دی مونږ او ټولو مسلمانانو ته ددغه مرض څخه شفاء نصیبه وګرځوی. (١)

او ځنی خلك په دی ګمان هم دی چی دغه محفل ته نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خپله تشریف راوړی چی له همدی امله یی داستقبال لپاره ودریږی سلام اداء کوی او هرکلی اهلا وسهلا وایی چی دا ډیر لوی باطل او دبدترین جهل نتیجه ده ، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم دقیامت دورځی نه مخکښی دخپل قبرڅخه نه راوځی او نه دچا سره ملاقات کوی او نه ددوی اجتماع ګانوته حاضریږی بلکښی دقیامت دورځی پوری په خپل قبر کښی مقیم او تشریف لرونکی دی او روح مبارك یی دعزت په مقام کښی درب العزت په وړاندی په اعلی علیین کښی قرار لری لکه چی الله پاك دالمؤمنون په سورة کښی فرمایلی دی: (ثُمَّ اِنَّکُم بَعدَذٰلِكَ لَمَیِّتُونَ ثُمَّ اِنَّکُم یَومَ القِیَامَةِ تُبْعَثُونَ) [٢].

١- کله چی د رسول الله صلی الله علیه وسلم دمیلاد په مناسبت محفلونه او غونډی جوړول لکه چی تاسوته دشرعی دلائلو په رڼا کښی ثابته شوه کوم شرعی حیثیت نه لری نو دبل هرچا دزیږیدنی تلین چی په هرنوم سره لمانځل کیږی په طریق اولی سره غیر مشروع او ناروا عمل دی ولوکه دخلکو په نظر ډیرغت اشخاص پکښی هم ګډون وکړی لکه په موجوده وخت کښی چی د پیرانو او ملنګانو په قبرونو او مزارونو باندی دعرس په نوم غونډی اومیلی جوړیږی او یو تعداد دپام وړ مذهبی او سیاسی اشخاص پکښی ګډون کوی. مترجم

٢- د المؤمنون سورة(١٥-١٦) بیا بیشکه تاسی پس له دی خامخا مړه کیدونکی یی، بیشکه تاسی دقیامت په ورځ کښی بیا ژوندی را پاڅولی شی.

اوهمدارنگه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي: قال النبي صلی الله علیه وسلم انا اول من یشق عنه القبر یوم القیمة وانا اول شافع وانا اول مشفع [١].

دغه مبارك حدیث او پاسنی ذکر شوی مبارك آیت او هغه نور آیاتونه او احادیث چی دغو دواړوته په معنی کښی ورته والی لری ټول په دی باندی دلالت کوی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم اوهم نور مړی به د قیامت له ورځی نه مخکی دخپلو قبرونو څخه نشی راوتلی، او دا دټولو اسلامی علماءُ په مینځ کښی مجمع علیها او متفقه مسئله ده چی هیڅ نزاع او اختلاف پکښی ددوی ترمینځ نشته، نو مسلمانانوته پکاردی چی دغه مسائل په پام کښی ونیسی او دهغو بدعاتو او خرافاتو څخه اجتناب وکړی کوم چی جاهلانو ایجاد کړی دی او په شرعی دلیل باندی اتکاء نه لری.

والله المستعان وعلیه التکلان ولاحول ولاقوة الا به.

اما کوم چی په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندی درود

---

١- دقیامت په ورځ به زه هغه څوك یم چی دټولونه به لومړی دقبر څخه پورته کیږم، او زه به لومړی شخص یم چی سفارش به کوم او زه به لومړی شخص یم چی شفاعت به می قبول شی. علیه من ربه افضل الصلوة والسلام.

او سلام ویل دی هغه بی له شکه دتقرب حاصلولو غوره طریقه او نیك عمل دی لکه چی الله پاك فرمایلی دی: انَّ اللّٰهَ وَمَلٰئِکَتَهُ یُصَلُّونَ عَلَی النَّبِیِّ یاأَیُّهَا الَّذِینَ اٰمَنُوا صَلُّوا عَلَیهِ وَسَلِّمُوا تَسلِیمًا[1].

او درسول الله صلی الله علیه وسلم فرمان دی: من صلی علیَّ واحدة صلی الله علیه بها عشرا[2] او دا په هروخت کښی جائز او مشروع عمل دی او بالخصوص دهر لمانځه نه وروسته یی په ویلو باندی زیات ټینګارشوی دی، او حتی چی دډیرو علماء په نزد باندی دهرلمانځه په روسته نی قعده کښی ددرود لوستل یو وجوبی امر دی، او په نورو ډیرو ځایونو کښی بیا درود ویل لکه چی یو زیات شمیر احادیث وریاندی دلالت کوی سنت موکده دی، مثلاً د آذان ویلو وروسته، درسول الله صلی الله علیه وسلم دمبارك نوم اخستلو په وخت کښی، او دارنګه دجمعی په شپه او ورځ کښی شو.

---

١- بیشکه الله پاك او پریښتی پرنبی علیه السلام باندی درود وایی، ای مؤمنانو تاسی پرهغه باندی ډیر درود او سلام ولولئ.

٢- چاچی پرماباندی یوځل درود ووایه الله پاك په هغه باندی لس واری درود او رحمت لیږی.

دالله پاك څخه سوال کوو چی مونږ او ټولو مسلمانانو ته
په دین باندی دپوهیدو او ثبات توفیق راکړی او دنبوی سننو
مطابق راته عمل په برخه کړی او له هر راز بدعاتو او خرافاتو
څخه مو په امان کښی وساتی اِنَّهُ جَوَّادٌ کَرِیمٌ وَصَلَّی اللّهُ وَسَلَّمَ
عَلی نَبِیِّنَا مُحَمَّدٍ والِه وصَحبِه اَجمَعِین.

# دوه یمه رساله

دمعراج دشپی درناوی او په دغه مناسبت دخاصو مراسمو ترسره کولو حکم.

الحمد لله والصلوة و السلام علی رسول الله وعلی اله وصحبه. امّا بعد: په دی کښی شك نشته چی د معراج واقعه درسول الله صلی الله علیه وسلم په صداقت باندی روښانه او ځرگند دلیل دی، او دالله تعالی په وړاندی درسول اکرم صلی الله علیه وسلم دشان او منزلت په برخه کښی ښکاره ثبوت دی لکه چی همدغه واقعه دالله تعالی په بی ساره قدرت او په گردو مخلوقاتو باندی د ده دعلو او اوچت والی په باب یوستر دلیل هم دی. الله جل جلاله په دی هکله داسی فرمایلی دی:

سُبْحَانَ الَّذِیْ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَی الْمَسْجِدِ الْاَقْصَی الَّذِیْ بَارَکْنَا حَوْلَهٗ لِنُرِیَهٗ مِنْ اٰیٰتِنَا اِنَّهٗ هُوَالسَّمِیْعُ الْبَصِیْرُ[1] .

---

(۱) بنی اسرائیل: (۱) پاك دی هغه ذات چی خپل بنده(محمد) یی بیولی ؤ په یوه شپه کښی یعنی په یوه برخه دشپه کښی د مسجد حرم څخه تر مسجد اقصی پوری، هغه چی مونږ برکت اچولی دی گرد چاپیره دهغه او دغه بیول د محمدﷺ د دی لپاره ؤچی وښایو مونږ ده ته ځنی دخپلو دلائلو څخه بیشکه چی دغه الله همدی ښه اوریدونکی او لیدونکی دی.

درسول الله صلی الله علیه وسلم څخه په تواتر سره ثابته شوی ده چی دی اسمانو نوته پورته بوتلل شو. دټولو اسمانونو دروازی ورته بیرته شوی ان تردی چی داووم اسمان څخه تیر شو، او خپل پالونکی یی

ورسره دهغه ځه متعلق خبری وکړی دکوم شی چی ئی اراده درلوده، او الله تعالی وریاندی پینځه لمونځونه فرض کړل، او دغه لمونځونه ابتداءً الله پاك پنځوس فرض کړی ؤ، خود رسول الله صلی الله علیه وسلم دټینګکار او بیا بیا مراجعی په سبب چی هر واربه ئی دالله تعالی نه د تخفیف سوال کاؤ پینځه لمونځونه پاتی شول چی په فرضیت کښی پنځه دی او په اجر وثواب کښی پنځوس دی ځکه دیوی نیکی پرځای الله پاك لس برابره بدله او ثواب ورکوی. فلله الحمد والشکر علی جمیع نعمه.

دغه شپه په کومه کښی چی داسراء او معراج واقعه پیښه شوی ده په صحیح احادیثو کښی ددغه شپی تعین نه دی راغلی او ټول هغه روایات چی ددغه شپی په تعین کښی وارد دی دحدیث دفن پوهانو په نزد باندی هغه درسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ثابت نه دی او داچی الله پاك دغه شپه

دخلکو څخه هیره کړی ده په دی کښی هم دالله پاك ډیر لوی
حکمت دی او فرصاکه دمعراج دشپی تعین هم ثابت شی؛
مسلمانانو له جائز نه دی چی دغه شپه دعبادت اوریاضت لپاره
خاص وګرځوی او یا په دغه شپه کښی دخاصو مراسمو په ترڅ
کښی محفلونه جوړ کړی، ځکه نبی علیه السلام او دهغه
اصحابو رضی الله عنهم په دغه شپه کښی نه کوم محفل او
مجلس جورکړی ؤ او نه ئی هغه دکوم شی دپاره خاص کړی وه،
نوکه په دغه شپه کښی محافل جوړول او په خاصو مراسمو سره
ددغه شپی لمانځل شرعی حکم وائی نو خامخا به رسول الله
صلی الله علیه وسلم خپل امت ته قولا او یافعلا دهغی بیان
کړی وی او که درسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ددغه
شپی داهتمام متعلق کوم شی واقع شوی وای نو هغه به معلوم
او مشهور وی او صحابه کرامو به خامخا مونږ ته دهغی نقل او
روایت کړی وی ځکه هغوی په پوره امانت داری سره دخپل
پیغمبر محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ټول هغه څه
نقل کړی دی چی امت مسلمه ورته اړتیا لری، ددین په باره
کښی له هغوی نه هیڅ کمی نه دی شوی بلکښی هغوی دهر
نیك کارکولوته سبقت او وړاندی والی کړی دی نوکه په دغه

شپه کښی ددغه شپی دتعظیم په خاطر په خاصو مراسمو سره غونډه او جشن نیول مشروع طریقه وائی، نو صحابه کرامو به ترټولو خلکو څخه مخکښی دغه عمل ته اقدام کړی وای، او رسول الله صلی الله علیه وسلم ناصح ترین دخلکو دی، او درسالت پیغام یی په بشپړه توګه سره رسولی دی او امانت یی ادا کړی دی. نو که چیرته ددغه شپی درناوی او مجلسونه جوړول پکښی دالله تعالی ددین داحکامو څخه وای، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به ضرور د هغی بیان کاؤ او پټ به یی نه پریښوده خو کله چی په دی برخه کښی دهیڅ کوم شی ثبوت دشارع له خوا نشته نو دا په داګه شوه چی ددغه شپی تعظیم او محفلونه جوړول په دغه شپه کښی د اسلام څخه نه دی ځکه الله پاك ددغه امت لپاره خپل دین مکمل کړی او نعمت یی ورله پوره کری دی او دهغه چاپه هکله یی کرکه ښودلی ده چی په دین کښی هغه څه معمول ګرځوی کوم چی الله پاك دهغی دکولو اذن نه وی کړی الله پاك دخپل مبین کتاب دمائدی په سورت کښی داسی فرمایلی دی: اَلیَومَ اکمَلتُ لَکُم دینَکُم واَتمَمتُ عَلَیکُم نِعمَتِی وَرَضِیتُ لَکُمُ الاِسلاَمَ دِیناً. دغه راز دشوری په سورة کښی الله(ج) فرمایلی دی: (اَم لَهُم شُرکَاءُ

شَرَعُوا لَهُم مِنَ الدِّينِ مَالَم يَاذَن بِهِ اللّهُ ولولاكَلِمَةُ الفَصلِ لَقُضِيَ بَينَهُم وَاِنَّ الظّلِمِينَ لَهُم عَذَابٌ اَلِيمٌ[۱].

او په ډیرو احادیثو کښې هم دبدعاتو نه دځان ساتنې په باب درسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم ارشادات موجود دی او تصریح پکښې شوی ده چې بدعات ګمراهی او ضلالت دی او داله دی امله چې اسلامی ټولنه د بدعاتو عظیم خطرته پام لرونکې اووسی او دکولو څخه یې اجتناب وکړی ددغو احادیثو له جملې څخه یو هغه حدیث دی چې په صحیحینو کښې دحضرت عائشې ام المؤمنین رضی اللّه عنها په روایت سره موجود دی چې رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم فرمایلی دی:

(من احدث فی امرنا هذا مالیس منه فهورد)(۱) او دامام مسلم په یو روایت کې داسې راغلی دی: (منْ عمل عملاً لیس علیه امرنا فهورد)[۲] «چاچې داسې یوعمل وکړچې څمونږ اذن

---

۱- شوری (۲۱) آیا دوی لره شریکان دی چې سازکړی دی هغوی د دوی لپاره له دین څخه هغه څه چې حکم نه دی کړی په هغې سره اللّه پاك اوکه چیری نه وائي خبره دفیصلې نو خامخا به حکم کړی شوی ؤ په مینځ ددوی کښې، او بیشکه ظالمان به په دردناك عذاب کښې مبتلا وی.

۲- ترجمه یوځل مخکښې شوی ده.

او طریقه په کی نه وی هغه مردود دی»

دمسلم شریف په یو بل حدیث کښی دجابر رضی الله څخه روایت دی، دی وائي چی رسول الله صلی الله علیه وسلم به دجمعی دورځی په خطبه کښی فرمایل:

(اما بعد: فان خیر الحدیث کتاب الله وخیر الهدی هدی محمد صلی الله علیه وسلم وشرالامور محدثاتها وکل بدعةٍ ضلالة)[۱].

حضرت عرباض بن سارية رضی الله عنه فرمائی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم یوه ورځ مونږ ته په دومره مؤثر اندازه سره وعظ او بیان وکړو چی په زړونوکی ورڅخهٔ ویره پیدا شوه او سترګی ژړه غوني شوی اوخکی تریته اوبهیدی مونږ وویل: ای دالله تعالی رسوله! معلومیږی چی ګواکی دا آخرنی او الوداعی وعظ دی نو وصیت وکړه مونږ ته، رسول الله صلی الله علیه وسلم ؤفرمایل:

اوصیکم بتقوی الله والسمع والطاعة وان تأمر علیکم عبد فانه من یعش منکم فسیری اختلافا کثیرا فعلیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین من بعدی تمسکوابها وعضوا علیها

---

۱- ترجمه یوحل مخکسی شوی ده.

بالنواجذ وایاكم ومحدثات الامور فان كل محدثة بدعة وكل بدعة ضلالة.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم احادیث پدی برخه کښی ډیر وارد شوی دی او دغه ډول د رسول الله صلی الله علیه وسلم داصحابو او صالحینو سلفونه هم دبدعاتو څخه دځان ساتنی په باب ویره او ترهه ثابته ده او البته داپه دی لحاظ چی بدعت په دین او اسلامی شریعت کښی دداسی یو عمل زیات والی دی چی دالله پاك اذن او حکم پکښی نشته او دیهودانو او نصرانیانو سره چی داسلام دشمنان دی مشابهت او ورته والی دی ځکه هغوی په دین کی هغه خود ساخته څیزونه راننه ایستلی ؤ چی الله پاك یی حکم نه ؤکړی اوبل داچی دبدعاتو دمینځ ته راتلوله امله په نقصان اونیم ګړتیا سره داسلام دمقدس دین متهم کیدل لازمیږی او هرچاته معلومه ده چی په دی کی څومره لوی فساد دی او دالله پاك ددغه مبارك قول سره مخالفت دی چی فرمائی: (اَلْیَومَ اکمَلتُ لَکُم دِینَکُم وَاَتمَمتُ عَلَیکُم نِعمَتِی وَرَضِیتُ لَکُمُ الاِسلاَمَ دِینًا).

او همدارنکه درسول الله صلی الله علیه وسلم دهغو احادیثو صریح اوښکاره مخالفت دی کوم چی دبدعاتو څخه

دځان ساتنی، ویری او منافرت متعلق وارد شوی دی.

زه هیله لرم هغه دلائل کوم چی مونږ ذکر کړل، ددغه بدعت یعنی داسراء او معراج دشپی دجشن نیول او لمانځلو دردکولو په برخه کښی دحق مطالبه کونکی لپاره کافی او قناعت بخښونکی وی او پری پوه شی چی داعمل کوم شرعی حیثیت نه لری دځانه اضافه کړی شوی کار دی ځان لری ساتنه ورنه ضروری خبره ده، ځرنګه چی الله پاك په مسلمانانو باندی نصیحت کول او دشرعی امورو بیانول واجب ګرځولی دی او دعلم کتمان او پټول ئی حرام کړی دی، نو ما غوره وګڼله چی دخپلو مسلمانانو ورونو پام دغه بدعت ته راوګرځوم کوم چی په زیاترو سیمو کښی معمول او مروج دی ان تردی چی بعضو خلکو پری باندی دشرعی او دینی عمل ګومان کړی دی.

مونږ دالله پاك څخه سوال کوو چی مسلمانان اصلاح او درست کړی او دین باندی پوهیدل ئی نصیبه وګرځوی مونږ او دوی ته په حق باندی دتمسك او ثبات او دشریعت مخالف عمل په ترك او پریښودو باندی توفیق راکړی او الله پاك په دی باندی قادر او توانا دی.

وصلی الله علیه وسلم وبارك علی عبده ورسوله نبینا محمد واله وصحبه.

# دریمه رساله

دشعبان (برات) دمیاشتی دپینځلسمی شپی دخاص درناوی او دعبادت لپاره دهمدغه شپی دتخصیص او تعین په هکله شرعی حکم.

الحمدللهِ: لائق دحمد او ستاینی دی هغه ذات چی زمونږ لپاره ئی خپل دین کامل کړی دی او پرمونږ باندی ئی دخپلو نعمتونو پوره پیرزونه کړی ده، درود او سلام دی وی دالله پاك په نبی او رسول رحمة للعلمین محمّد صلی الله علیه وسلم باندی.

اما بعد: الله پاك په قرآن کریم کښی فرمایلی دی:

اَلیَومَ اکمَلتُ لکُم دِینَکُم واَتمَمتُ عَلیکُم نِعمَتِی وَرَضِیتُ لَکُمُ الاِسلاَمَ دِینًا[1] بیا سورة شوری کښی فرمائی:

(اَم لَهُم شُرَکَآءُ شَرَعُوا لَهُم مِنَ الدِّینَ مَالم یَاذَن بِهِ اللّهُ)[2]

وفی الصحیحین عن عائشة رضی الله عنها عن النبی صلی

---

۱-۲- ددی تپولو ترجمه په لومړۍ رساله کښی مکمله شوی ده.

الله عليه وسلم انه قال: (من احدث فی امر نا هذا مالیس منه فهورد)

یعنی چاچی دمحمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په دین کښې نوی کار اضافه کړو هغه کار مردود او قابل دمنلو نه دی او دمسلم شریف په یو روایت کی داسی راغلی دی:

(من عمل عملا لیس علیه امرنا فهورد) یعنی چاچی داسی یوعمل وکړ چی څما دطریقی او عمل مطابق نه وی مردود دی.

وفی صحیح مسلم عن جابر رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم کان یقول فی خطبته یوم الجمعة، اما بعد: فان خیرَ الحدیث کتاب الله و خیرَ الهدی هدی محمّد صلی الله علیه وسلم وشرَ الامور محدثاتها وکل بد ضلالة.

په دغه برخه کی آیاتونه او احادیث زښت زیات دی چی ټول صراحة په دی باندی دلالت کوی چی الله پاك سبحانه وتعالی یقیناً ددغه امت لپاره خپل دین مکمل کړی او نعمت یی ورباندی تمام کړی دی او رسول الله صلی الله علیه وسلم ددغه جهان څخه هغه وخت رحلت وکړ چی دین یی په بشپړ توګه سره ورساؤ او دخپل امت لپاره یی ټول هغه څه چی الله

پاك ددغه امت لپاره داقوالو او افعالو په ساحه کښې مشروع گرځولی ؤ بیان کړل، او داخبره یی واضحه کړی ده چی ټول هغه ډول اعمال اوکارونه چی خلك یی دده درحلت نه وروسته ایجاد کړی او اسلام ته یی منسوب کړی هغه که اقوال وی او که اعمال وی ټول بدعت او مردود دی، ولوکه دغه عمل یی په ښه نیت باندی هم کړی وی.

درسول الله صلی الله علیه وسلم صحابؤو او ددوی نه وروسته نورو اسلامی علماؤ دغه حقیقت درك کړی وو نو ځکه یی دبدعاتو په هکله کرکه او خوف درلوده او ځانونه یی ورنه ساتل، ابن وضاح، طرطوشی ابوشامه او داسی نورو علماؤ چاچی دبدعاتو په رداو دسنتو په اتباع کښې کتابونه لیکلی دی ټولو په دغه برخه کښې بحث او څیړنه کړی ده.

دبرات یعنی دمحفلونو په ترځ کښی دشعبان دمیاشتی دپنځلسمی شپی درناوی او دغه ورځی (دشعبان ۱۵ نیټی) ته دروژی نیولو لپاره اختصاص ورکول دهغو بدعاتو له جملی څخه یو بدعت دی چی دځنو خلکو لخوا رامینځ ته شوی دی، او هیڅ داسی دلیل چی داعتماد وړوی دهغي په ثبوت باندي وجود نه لري اګر چي ځني احادیث ددغه شپي په فضیلت کښي وارد دي

خو هغه ضعيف دي ددي ور نه دي چه اعتماد ورباندي وشي،
او کوم احاديث چی په دغه شپه کښی په نسبت سره نوروته
دلمونځ کولو دفضيلت په باب وارد دی هغه کرد موضوعی او
مختلق دی لکه چی ډيرو پوهانو ديته دخلکو پام اړولی دی
روسته به ان شاء الله ددوی دکلام يو قسمت ذکر شی. دشام او
بعضونورو سمو دځنو سلفو آثارهم ددغه شپی دفضيلت په هکله
شته خود جمهورو علماؤ په دی اتفاق دی چی په دغه شپه کښی
خاص قسم مجالس او محفلونه ترتيبول بدعت دی.

او هغه احاديث چی ددغه شپی په فضيلت کښی وارد دی
هغه ټول ضعيف دی او ځنی ئی موضوعی هم دی، ددغو علماؤ
له جملی څخه يو هم حافظ ابن رجب دی چی په خپل کتاب
(لطائف المعارف) او ځنو نورو کتابونو کښی يی دغه ټکی ته
په ګوته نيولو سره خلک متوجه کړی دی.

او په‌ضعيفو احاديث باندی صرف دهغو عباداتو په برخه کښی
کوم چی اصل ئی په صحيح دلائلو سره ثابت وی، عمل کولی
شی.

اما دشعبان په پنځلسمه په اصطلاح دبرات په شپه کښی
دخاصو مراسمو دترتيب او محفلونو جوړولو دثبوت په هکله

کوم صحیح دلیل وجود نه لری چی ضعیفه احادیث بیا دهغی په څنګ کښی مؤثر واقع شی.

دغه ارزښتناکه قاعده شیخ الاسلام ابن تیمیه(رح) ذکر کړی ده، او زه په دغه مسئله کښی دځنو علماؤ اقوال رانقل کوم ترڅو ددلائلو دمخی ددغی مسئلی په باب معلومات حاصلی کړی.

ټول علماء په دی متفق دی چی دخلکو په مینځ کښی دمتنازع فیه مسائلو وړاندی کول دحکم معلومولو دپاره دالله تعالی کتاب او درسول الله صلی الله علیه وسلم احادیثو او سنتوته واجب دی ترڅو ولیدل شی چی دالله تعالی په کتاب قرآن عظیم الشان او درسول الله صلی الله علیه وسلم په احادیثو اویا په دغو دواړو کښی ددغه مسئلی په باب څه حکم دی: که په قرآن کریم او احادیثو کښی او یا په یو ددغو دواړو کښی یی حکم موجود ؤ، نو دادشریعت حکم دی عملی کول یی واجب دی او که چیرته ددی دواړونه مخالف ؤ نو بیا ترك او پریښودل یی واجب دی، او هغه عبادات چی په قرآنِ کریم او سنتو کی دهغی دمشروعیت په باب کوم دلیل موجود نه وی نو بیا خلکو ته ددغه عمل دکولو پلوری دعوت ورکول او خوبائی

بیانول خوبی لاڅه کی، ځکی چی په خپله دغه عمل بدعت دی کول ئی هیڅ جواز نه لری. ځکه چه اللهؔ په سورة النساء کی فرمایلی دی:.

یاَیُّهَا الَّذینَ امَنُوا اَطِیعُوا اللّٰه وَاَطِیعُوا الرَّسُولَ وَاُولیِ الاَمرِمِنکُم فَاِن تَنَازَعتُم فِی شَیءٍ فَرُدُّوهُ اِلیَ اللّٰهِ وَالرَّسُولِ ان کُنتُم تُؤمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالیَومِ الاخِرِ ذٰلِكَ خَیرٌ وَّ احسَنُ تَاوِیلاً ۰

همدارنګه الله پاك په سورت شوری کښی فرمائی:

(وَمَا اختَلَفتُم فِیهِ مِن شَیءٍ فَحُکمُهُ اِلیَ اللّٰهِ)

او په سورت آلعمران کښی فرمائی:

قُل اِن کُنتُم تُحِبُّونَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُونِی یُحبِبکُمُ اللّٰهُ وَیَغفِرلَکُم ذُنُوبَکُم[۱] ۰

بل ځای سورت نسآء کښی الله تعالی فرمائی:

فَلاَ وَرَبِّكَ لاَیُؤمِنُونَ حَتّٰی یُحَکِّمُوكَ فِیمَا شَجَرَ بَینَهُم ثُمَّ لاَ یَجِدُوا فِی اَنفُسِهِم حَرَجاً مِمَّا قَضَیتَ وَیُسَلِّمُوا تَسلِیماً ۰

په دی برخه کښی آیاتونه ډېر زیات دی او ټول صراحة

۱- روایه دوی ته که چیری یی تاسی چی محبت کوی له الله تعالی سره نو ځما متابعت وکړئ الله تعالی به تاسو سره محبت وکړی او ګناهونه به مو درمعاف کړی او الله مغفرت کونکی او ډیر رحم والا دی.

په دی دلالت کوی چی داختلافی مسائلو حکم دکتاب الله (قرآن کریم) او درسول الله صلی الله علیه وسلم داحادیثو له مخی معلومول واجب دی او بیا پردغه حکم باندی رضا او خوښی څرګندول هم واجب دی او هم دغه دایمان تقاضا ده چی دبندګانو دپاره په کښی هروخت فائده اوګټه ده او داخرت لپاره دکامیابی او سعات سبب دی.

حافظ ابن رجب په خپل کتاب (لطائف المعارف) کښی ددغه مسئلی په هکله دخپل هغه کلام په تعقیب چی مخکښی ذکر شوی دی وائی:

دشام والا څنو تابعینو لکه خالد بن معدان، محکول، لقمان بن عامر، او څنونورو به دشعبا ن دمنځنی (پنځلسمی) شپی خاص تعظیم او درناوی کاؤ، او په دغه شپه کښی به ئی په عبادت کښی ډیره زیاته سعی او کوښښ کولو، او بیا نورو خلکو ددغه شپی دفضیلت او تظمیم په هکله دهغوی پیروی وکړه او داسی ویل شوی دی چی دوی ته په دی برخه کښی اسرائیلی روایات رسیدلی ؤ، اما کله چی په نورو ملکونو کښی ددوی دغه عمل شهرت ؤموندونو دخلکو ترمنځ په کښی اختلاف پیدا شو، چا ددوی عمل دحجت په توګه وډمنلو او

ددغه شپی په تعظیم کښې یې دهغوی سره موافقت وکړو لکه دبصری او نورو سیمو څنی عابدین شول، ولی دحجاز زیاتره علماؤ چې له دی جملې نه عطاء او ابن ابی ملیکه هم دی دهغې نه انکار وکړ،او دمدینی منوری فقهاؤ قول چې هغه دځنو مالکینو اوبعضو نورو علماؤ قول هم دی عبدالرحمن بن زید بن اسلم ئې داسی نقل کوی چې هغوی ویلی دی: داټول بدعت دی اساس نلری. او دشام دعلماؤ په منځ کښې ددغه شپې دعبادت متعلق اختلاف دی او دوه قوله نقل شوی دی:

۱- یو قول دا دی چې په دغه شپه کښې په اجتماعی توګه سره عبادت کول په جماعت کښې مستحب عمل دی لکه خالد بن معدان، لقمان بن عامر او بعضی نورو به په دغه شپه کښې ښه کالی واغوستل، خوش بوی به یې استعمال کړه، سترګې به ئې به رنجو توری کړی او شپه به ئې په جماعت کښې په قیام (عبادت کولو) تیره کړه اسحق بن راهویه په دغه عمل کښې ددوی سره توافق درلوده او په جماعتونو کښې یې په اجتماعی توګه سره عبادت کولو دشعبان په پنځلسمه شپه (برات) کښې بدعت نه بلل. حرب الکرمانی په خپلو مسائلو کښې دده قول رانقل کړی دی.

۲- یو تعداد نور علماء وائی چی: په دغه شپه کښی دماخستن لمانځه نه بعد په خاصه توګه جماعتونوته دلمانځه ادا کولو، قیصوویلو اودعا غوښتلو لپاره دخلکو راټولیدل مکروه دی، اما که په انفرادی ډول سره بدون دکوم خاص ملحوظ نه لکه دنورو شپو په شان نفلی لمونځ کوی کراهیت نه لری، دا دامام اوزاعی(رح) قول دی څوك چی دشام امام، فقیه او پوه عالم ؤو، او ان شاء الله تعالی دا دټولو نه صحیح او حقیقت ته نږدی قول دی. ده دخپل کلام په آخر کښی ویلی دی:

دبرات یعنی دشعبان دپنځلسمی شپی دفضیلت په برخه کښی دامام احمد کوم قول نشته دی او داخترونو دشپو په باب چی کوم دوه روایات دهغه نه نقل دی دهغی نه هم په یو روایت کښی داخترونو په شپو کښی په اجتماعی ډول سره عبادت کول مستحب نه دی کنل شوی ځکه چی درسول الله صلی الله علیه وسلم او دهغه اصحابو څخه په دی هکله کوم شی نقل شوی نه دی، او په بل روایت کی ئی ورته مستحب ویلی دی هغه هم لدی امله چی عبدالرحمن بن یزید ابن الاسود چی تابعی ؤ دغه فعل ئی کړی ؤ، همدارنګه دشعبان په پنځلسمه شپه کښی دخاص قسم عبادت په باره کښی درسول الله صلی الله علیه وسلم او

صحابه کرامونه کوم شی ثابت دی صرف دومره قدری ثابته ده چی دتابعینو یوی ډلی کوم چی دشام دفقهاؤ د جملی څخه ؤو داعمل یی کاؤ دحافظ ابن رجب دکلام مقصد پائی ته ورسیده.

دا دده لخوا په دی حقیقت باندی تصریح کول دی چی درسول الله صلی الله علیه وسلم څخه او همدارنګه دصحابه رضی الله عنهم نه دشعبان دمنځنی شپی دفضیلت په باب کوم ثبوت نشته.

هغه رأی چی امام اوزاعی(رح) اختیار کړی ده او په انفرادی شکل سره یی دافرادو عبادت کولو ته په دغه شپه کښی مستحب ویلی دی او بیا حافظ ابن رجب هم دغه قول غوره کړی دی، داغریب او ضعیف قول دی، ځکه دکوم شی مشروعیت چی په صحیح دلائلو ثابت نه وی نو مسلمان دپاره ددغسی عمل دکولو جواز نشته، ان که هغه یواځی کوی او که دنورو سره ئی په جمعه کوی پټ ئی کوی او که ښکاره ئی کوی، ځکه درسول الله صلی الله علیه وسلم داقول چی فرمائی: (من عمل عملا لیس علیه امرنا فهورد) عام دی، همدارنګه دلائل چی په رد دبدعاتو کښی وارد دی او خلك دبدعاتو

دکولو څخه منع کوی عمومیت لری.

امام ابوبکر طراطوشی رحمه الله په خپل کتاب (الحوادث والبداع) کښی ویلی دی: ابن وضاح دزید بن اسلم څخه روایت کوی چی ده وویل: (مونږ دخپلو فقهاؤ او مشائخو نه هیڅ څوك داسی ندی لیدلی چی د شعبان دپنځلسمی شپی خاص قسم اهتمام ته ئی توجه کړی وی او فضیلت ئی ورله بیان کړی وی او نه ئی دمکحول حدیث ته کوم التفات کاؤ او نه ئی دغه شپه په نورو شپو باندی غوره او بهتره ګڼله.

ابن ابی ملیکه ته چا وویل: زیادالنمیری وای چی دشعبان دپنځلسمی شپی دعبادت اجر او ثواب دلیلة القدر داجر او ثواب سره برابر دی (فقال لو سمعته وبیدی عصا لضربته، ویئی ویل: که څما په لاس کښی امسا وای او داخبره می ترینه اوریدلی وائی نو خامخا به می پری وهلی وی، «زیاد» یو قیصه خوان شخص ؤ چی قیصی به ئی بیانولی.

علامه شوکانی رحمه الله په (الفوائد المجموعه) کښی داسی ویلی دی: یا علیٌّ من صَلّی مائة رکعةٍ لیلة النصفِ من شعبان یقرأ فی کل رکعةٍ بفاتحةِ الکتاب وقل هو الله احد عشر مرات الاَّ قضی الله له کل حاجة... الخ «ای علی چاچی دشعبان

په پنځلسمه شپه کښی یوسل رکعاتونه لمونځ وکړو او په هر رکعت کښی یوولس ځلی فاتحه (الحمد) او قل هو الله احد (سورت اخلاص) ولولی، ټول حاجتونه به ئی الله پاك پوره کړی» دغه روایت بی له شکه موضوعی دی او رجال یعنی راویان یی ټول مجهول دی. داحدیث دویمه او دریمه طریقه هم روایت شوی دی خوټول موضوعی دی او روات ئی مجهول دی او په مختصر کښی ویلی دی: (حدیث) (صلوة نصف شعبان باطل) یعنی دغه دشعبان د پنځلسمی (منځنی شپی) دفضیلت حدیث باطل دی، او په ابن حبان کښی دحضرت علی رضی الله عنه حدیث (اذا کان لیلة النصف من شعبان فقوموا لیلها وصوموا نهارها) یعنی کله چی دشعبان پنځلسمه شپه وی نو په شپه کښی یی عبادت وکړی او په ورځ کښی یی روژه ونیسی، ضعیف دی او ددیلمی او ځنو نورو په نزد باندی موضوعی دی او په دری واړه طریقو کښی یی ټول راویان مجهول او ضعیف دی. همدغه راز دی وای ده دولس رکعاتونو والا روایت چی دیرش کرتی سورت اخلاص لوستل پکښی راغلی دی، او همدارنګه دڅوارلس رکعاتونو والا روایت دواړه موضوعی دی.

دفقهاؤ يوجماعت لکه صاحب داحياء دځنو نورو په شمول
او همدارنګه بعضی مفسرين په دغه حديث باندی تيروتی دی
او دشعبان دپنځلسمی شپی دلمانځه متعلق يی په مختلفو طريقو
سره روايتونه نقل کړی دی، حال داچی ټول باطل او موضوعی
دی،او دا دحضرت عائشی ام المؤمنين رضی الله تعالی عنها
دهغه حديث سره کوم چی ترمذی روايت کړی دی او پکښی
درسول کريم صلی الله عليه وسلم بقيع ته تلل او په نيمه شپه
کښی ددنيا اسمان ته درب العزت نزول چی دبنی کلب دميږو د
وړيوو څخه زياتو خلکوته بخښنه او مغفرت کول ذکر° دی
منافات نه لری ځکه چی دخبرو او بحث موضوع دشعبان
دپنځلسمی شپی ددغه خاص قسم صلوت اوعبادت په برخه
کښی ده، سره له دی چی دعائشی ام المؤمنين رضی الله تعالی
عنها په دغه حديث کښی ضعف او انقطاع هم ده، او حديث
دعلی رضی الله عنه چی ددغه شپی دقيام (عبادت) په باب
مخکښی ذکر شو او دتير شوی تحقيق له مخی پکښی ضعف هم
دی ددغه ډول لمانځه دبطلان سره منافات نه لری- انتهی
المقصود-

حافظ عراقی ويلی دی: هغه حديث چی دشعبان دمنځنی

شپې ددغه لمانځه متعلق روایت شوی دی موضوعی او په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندی دروغ ویل دی.

امام نووی په کتاب (المجموع) کښې ویلی دی: (الصلوة المعروفة بصلوة الرغائب وهی اثنتاعشرة رکعة بین المغرب والعشاء... الخ یعنی درجب دمیاشتی دلومړی جمعی داولی شپې دماښام اوماخستن ترمنځ لمونځ چی دولس رکعتونه دی او په صلوة الرغائب سره شهرت لری، او دشعبان دمنځنی (پنځلسمی) شپې لمونځ چی تقریبا یوسل رکعتاته دی، دا دواړه لمونځونه بدعت او ناروا دی، اګر چه په قوت القلوب او احیاء علوم الدین کتابونو کښې یی یادونه شوی ده، خو پکار دادی چی نه په دی څوك وغولیږی او نه په هغه حدیث څوك تیروخوری چی په دغه دواړه کتابونو کښې ذکر شوی دی ځکه چی دا ټول باطل او بی اساسه دی.

او بعضی ائمه چی ددغه مسئلی دحکم متعلق وریاندی اشتباه راغلی ده او ددغه شپو ورځو په باب یی داستحباب حکم کړی دی او رسالی یی لیکلی دی. دا ددوی غلطی ده څوك دی وریاند نتیرنه وځی.

امام ابوعبدالرحمن بن اسماعیل المقدسی په دی برخه کښې

پوارزښت ناك كتاب ليلكي دی او ددی دواړو دبطلان په هكله
يی پكښنی مطالب په ډير اوچت انداز سره ځائی په ځای كړی
دی، دغه راز دنورو علماؤ اقوال زښت زيات موجود دی خو
مونږ په دی خاطر چی خبره ډيره اوږده نه شی رانقل مونكړل،
او ښائی هغه څه چی مونږ يی مخكښنی يادونه وكړه دحقيقت
معلومولو لپاره كافی او قناعت بخښونكی وی.

د ذكر شوو آياتونو نبوی احاديثو او دعلماؤ او پوهانو
دتحقيق او كلام څخه دحق پلټونكو لپاره دا په ډاګه شوه چی
دشعبان دمياشتی په منځنی شپه كښنی دلمانځه او نورو اعمالو
داجراء كولو لپاره مجلسونه ترتيبول، او ورځی له يی دروژی
نيولو لپاره تخصيص وركول دزياتره علماؤ په نزد باندی بدعت
او ناروا دی او په سپيڅلی شريعت كښنی د هغی كوم ثبوت او
اصل نشته بلكښنی داهغه قسم عمل دی چی دصحابه ؤ رضی
الله عنهم دزمانی څخه وروسته په اسلام كښنی اضافه سوی دی
او د الله تعالی دغه قول چی فرمايی: ( اَلیَومَ اَكمَلتُ لَكُم
دِينَكُم) او په دغه معنی سره نور آياتونه. او همدارنكه داقول
دنبی اكرم صلی الله عليه وسلم چی فرمائی: (من احدث فی
امرنا هذا ماليس منه فهورد) او دغه ډول نور احاديث په دی

مسئله کښې او نورو مسائلو کښې دحق پیروانو لپاره کفایت کوی.

په صحیح مسلم کښې دابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم ؤفرمایل:

(لاتخصوا لیلة الجمعة بقیام من بین اللیالی ولاتخصوا یومها بالصیام من بین الایام الا ان یکون فی صوم یصومه احدکم) [١].

نو که چیرته په شپو کښې کومه شپه دعبادت دپاره خاص کول جائز وائی نو دټولو څخه دجومی دشپې تخصیص بهتر اوغوره ؤ ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دسیئي احادیثو نه دجومی دورځی فضیلت ثابت دی خو کله چی رسول الله صلی الله علیه وسلم دجومی دورځی تخصیص منع کړی دی نو د نورو ورځو تخصیص په طریق اولی سره ناجائز او ناروا دی. بناءً دعبادت لپاره دهیڅ شي تعین او ټاکل جواز نلری مګرداچی کوم سیي دلیل په تخصیص دوخت او زمانی باندی

١- په شپو کښې دجومی شپه دقیام او عبادت لپاره مه ټاکی او په ورځو کښې دجومی ورځ دروژی نیولو دپاره مه تخصیصه وی مګر داچی یوکس مو دجومی نه مخکی ورځ روژه نیولی وی نو بیا ورسره دجومی دورځی روژه نیول باك نلری.

وجود ولری. دلیلة القدر او رمضان په مبارکو شپو کښې چې قیام یعنی عبادت کول مشروع امر ؤ نو رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم دهغی خبرورکړ او خپل امت ته ئی په دغو شپو کښې دعبادت دفضیلت پر باب بیان وکړ او په خپله ئی هم دغه فعل انجام کړ دبخاری او مسلم حدیث چې رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم پکښې فرمایلی دی: (من قام رمضان ایمانا واحتسابا غفراللّٰه له ماتقدم من ذنبه)[1] په دی باندی دلالت کوی.

نوکه چیرته دشعبان دمیاشتی دپنځلسمی شپی یا درجب دلومړی جومی او له شپه اویا داسراء او معراج د شپی تخصیص د خاصو مراسمو، محفلونو یا دکوم عبادت لپاره جائز او مشروع امر وی نو خامخا به رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم خپل امت ته په دغه برخه کښې هدایت ورکړی وای. او یا به ئی په خپله کړی وی، او که رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم داکار په خپله کړی وی نو صحابه کرامو رضی اللّٰه عنهم به خامخا

---

۱- چاچی درمضان په شپو کښې محضی دایمان او ثواب په خاطر قیام (عبادت) وکړ ، نو اللّٰه پاك به ورته ټول ګناهونه معاف کړی او چاچی دلیلة القدر په شپه کښې خالص دایمان او ثواب په نیت عبادت وکړ اللّٰه پاك به ورته دټولو مخکنی ګناهونو بخشنه وکړی.

امت مسلمه ته دهغی نقل او بیان کاو او پټ به یې نه پریښووده ځکه صحابه کرام د انبیاء علیهم السلام نه بعد بهترین او ناصح ترین د خلکو دی الله پاك دی درسول الله صلی اللهّ علیه وسلم د اصحابه نه راضی شی او الله پاك دی دوی راضي او خوشحاله کړی.

د علماؤ دکلام څخه چی مخکښې تیرشو دامعلومه شوه چی رسول الله صلی الله علیه وسلم او دهغه اصحابو رضی الله عنهم څخه‌درجب داولی جومی دلومړی شپی او د شعبان د منځنی شپی د فضیلت په باب کوم دلیل نشته نو دا ثابته شوه چی ددغو شپو ددرناوی په خاطر خاص قسم محافل او مجلسونه جوړه ول بدعت او ناروا دی، په همدغه ترتیب درجب اوه ویشتمه شپه چی ځینی خلك ئی داسراء او معراج شپه بولی دعبادت دپاره خاص کول جواز نه لری لکه څنګه چی دتیر شوو دلائلو دمخی ددغه شپی داهتمام په مناسبت محفلونه جوړول جواز نلری، او دعلماؤ سَبِی قول دادی چی دغه شپه پته ده چاته معلومه نه ده، او چاچی ویلی دی چی درجب اوه ویشتمه شپه د «معراج» شپه ده دایو باطل قول دی او په سَبِی احادیثو کښې ددی کوم اساس نشته.

مونږ. دالله پاك ښخه سوال كوو چې مونږ او ټولو مسلمانانوته په مسنونه طريقو باندې دثبات او عمل كولو توفيق راكړي او دهغو طريقو ښخه مو وساتي چې درسول الله صلى الله عليه وسلم دطريقو پرخلاف دي.

وصلى الله تعالى على عبده ورسوله نبينامحمد وعلى اله وصحبه اجمعين.

# التحذيـــر من البـدع

تاليف سماحة الشيخ

عبدالعزيز بن عبدالله بن باز

(بلغة البشتو)





# التحذيــر من البـدع

تاليف سماحة الشيخ

عبدالعزيز بن عبدالله بن باز

(بلغة البشتو)


المملكة العربية السعودية

المكتب التعاوني للدعوة والإرشاد وتوعية الجاليات بأم الحمام

تحت إشراف وزارة الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد

ت: ٤٨٢٦٤٦٦/٤٨٨٤٤٩٦ فاكس ٤٨٢٧٤٨٩ - ص.ب ٣١٠٢١ الرياض ١١٤٩٧

بشتو

٢٩